



# پښتونخوا

لومړی
## ټوک

خپرونکی: ستوری

# سر لیکونه

ډاکتر کبیر ستوري
**Dr. Kabir Stori**

| | |
|---|---|
| د پښتون ځلمي اعلان | چـپـه قـانـون |
| سـرتـیره نـسـرین | ابـتـکـار د تورو زلـفـو |
| د ازادۍ لــیـلا | سـیـاسـي نـارا |
| د پـښـتنو لیـکـوالو ټولـنه | ښـکـلـي پـښـتـونـخـوا |
| د مـیـنـي مـسـتـي | د نیانزکو واده |
| بـګـوه | قـامـي نـغـمـه |
| د زیارکښ نـوی جـهـان | فـلـسـفـي سـوال |
| قـام قـیـام | سیاسي تـومـنـه |
| نـوی مـیـن | |

Kiebitzweg 12
50389 Wesseling
Germany (Deutschland)
www.kabirstori.com
E-Mail: stori@kabirstori.com


د انټرنیټ په مخ

کمپوز : نسیم خان ستوري

ترتیب : ایمل خان ستوري

## د پښتون ځلمی اعلان

مړې نه وهی سوری چوپ هدیرې دي
دغه ستا د بنګړو شور پیغور نارې دي

«کبرا» مه باسه بنګړې د دواړو لاسو
د ځلمو توري غلیم په وینو سرې دي

استعمار او استثمار د وخت سره جنګ دي
د پښتون ځلمی اعلان او نغارې دي

پښتنی پیغلی دیرال وهی خوښیږې
وړو نجونو هم اخستی سرې چمبی دي

د پلرو په ننګ تاریخ به خو نازیږو
ملالی غوندې په کار نن پښتنی دي

حرکت کوې هر شی په حرکت دي
بریالی د وخت شه سمی فلسفی دي

«ملالی» د وخت شه غږ د انقلاب کړه
د خوشحال دیرو کې اوس داسی نغمی دي

دازاد پښتون بیرغ به پورته کیږې
د پښتون د نن تاریخ دغه وعدې دي

پښتونخوا کې پښتون خپله واکمن کیږی
د سبا د اسمان ستوری پلوشی دي

## سرتیره نسرین

په خمیره کې د ښایست ټولـه اشکلی ده
سرتیره نسرین بی حده ښکلی ده

د همت ډکه پښتنه ده
ناسته ولاړه ئې درنه ده
مینه د قام خپل ورسره ده

د ننګ غیرت په ورونی کې مور ترلی ده
سرتیره نسرین بی حده ښکلی ده

که نره ښځه وی همدا ده
ټوپک او غاړکی ترملا ده
استعمار وژنی ګوریلا ده

په پښتونخوا سرورکوې ډیره ښاغلی ده
سرتیره نسرین بی حده ښکلی ده

پاخه پښتونه ! سباوون دي

خــوب د مـرګ ورور داعـام قانون دی
خوب کړی تر څو ویښ شه !ژوندون دی

د ســبا ســـتوری او د ســهـر سپـــیده خــتلی ده
سر تــیــره نــســریـــن بــی حـــده ښــکـلـــی ده

## ابتـكـار د تورو زلـفو

چــې رنـد شــومــه ورګــډ شــوم په بازار د تورو زلفو
ما زړه خـلـکــه بـایـلـلــی پــه قــمار د تـورو زلــفو

د میـنـی نه پـیــدا شولــو انـسان په میـنه پـائـی
میـنی تـه پــیـدا شــولـو ګـلــزار د تــورو زلـــفــو

د خـدای پـه مـیـنه بند چې شو نو هلـه مسلمـان شـو
زه ولـــی یـــم پـــه میــنـه ګــنـــګار د تـورو زلــفــو

زه مـیــنـه کـې شـاعـر شــوم ازادې ځـمـا شعـار دی
تـالـی وهـمـه ځـانـګـمـه پــه هـــار د تـــورو زلــفـو

وطــن ځــمـا لــیلا ده د لـــیـلا زلـــفی مـې ستا یم
لاس نـه اخلم کـه وخـیــژم پــه دار پــه تــورو زلــفـو

ځــړو کی د لــیلا بـانـدې چې سره ستورې ختلی دې
بې مرګ به پـاتـی نـه شـی اســتـعمار په تورو زلفو

## د ازادۍ لـــيـلا

لـيلا د ازادۍ لـکـه سـپـين لـمر پـه غـره ښـکـاره شـوه
ختلی پـلـوشی د ښـکـلـی مـــخ نـــه ځـلـيدلـه

ګـلـــونـــه د بـــاغـــونـــه کـــوڅـــو نـــه و وتـلـــی
خـــنـدا د لـــوی وړو پـــه خـــولـه پـــرتـه وه ګـډيـدله

کـــارګـــرو او دهـــقـــانـانـــو اتـــڼو نـــه و جـــوړ کـــړی
نـغـــمه د انـــقـــلاب د پـــښـتـونـــوالـــی غـــړيـدلـه

روان پـــښـتون ځـلمی وو د مـلـــی ساز او سـرود سه
رسی د استـعـمـارئي د تـــورخـــم نـــه ټـــولـــولـــه

اعـــلان د انـــقـــلاب د ســـتـــوری يـو شـان د ژوندون و
ســامــراج او ارتـــجـــاع پـــه ژړا ســـروه ژړيـــدلـــه

## چـــپـه قـا نـو ن

تـور تـه بـه سپين او سپين ته تور او کوږ ته سم به وائي
زمـونـــږ پـه کلـــی کـــې د خان چـــپـه قـانـــون چـلـيـږی

هـر څـه ويلی شـی ازاد ئـې يـــو رښـتـيا بـــنـده ده
پـــيشـو واکـمـنـه د مستـو دروغ پـــه ښـــاښـو باديږی

## سیاسی نارا

د وطن مینه مې په زړه کې ده درنه پرته ده
ځما دماغ کې د ازاد ژوندون نشه پرته ده

د پښتون قام د ازادئ ناوې مې خیال کې ځانګی
وینه رګو کې مې سره نده توده پرته ده

ازبک ترکمن پښتون بلوچ او هزاره اولسه
ستاسو تاوان یو دی او ګډه مو فایده پرته ده

د ارتجاع په کور په ګډه سه غورځنګ دی پکار
په اتحاد کې د بری مو نښانه پرته ده

طبقاتی ملی ستم د منځه وړو د پاره
ستوری قلم کې د خوشحال توره تیره پرته ده

## د پښتنو لیکوالو ته ولنه

کله چې لیکوال ډله ایز کار وکړی تیارشی

هــلــه بـه پـه بـڼ د پـښـتـنو بـانـدی بهـارشی

سر چې نـذرانـه خپل لیکوالان وطـن تـه نـه کانـدی
قـام اولـس بـه ښنګه د درانـده خوبه بیدار شی

ځئ چې د خپل قـام او د وطـن په خاطـر یـو ځـای شو
نه خبژې یـو لاس نه ټـک چې ډیـر شـی نـو ټکار شی

ځـی د پښتـنو لیکوالـو جـوړه یـو ټـولـنـه کـړو
هله بـه قـلـم زمـونـږ تـیـری تـوری ګـذار شـی

ځی چې د پښـتـون د ازادۍ په خیال کې وځـانـګـو
چې ښنګ به دا غلام قام ددی خپل وطـن واکـدار شی

ځی چې د سپین ږیری باچا خان د جیل بدل واخلو
مونږ ته چې چا جیل جـوړ کـړی خپـلـه ور ګـذار شی

ځی چې د پښتون کور پښـتونخوا د اسمان ستوری شو
کړنګ وهو رالویږو چې دښمن مو خوارو زار شی

ښکلی پښتونخوا
ای د فـکـر ټالـه ډیـر وځـنګیـدم پـه تـا

خوب نه راځي ماله شپه مې کړه شوګیر سبا

مینه چې څما د ژوند ملګری ده
خیال ته راځي ماله ښکلي پښتونخوا څما

زړه ئې د کونړ غرونه دماغ ئې پېښور دی
سر نه ټیټې چاله مسته ده څما لیلا

بانه ئې د ننګروني او شونډې شربت چیني
سیند شي راځي ماله زه یې چښم سبا بیګا

زلفي ئې خیبر دی چې پرې مړه عاشقان ډیر دی
دروغ نه وایم چاله دی تاریخ شاهد په دا

هډوکي ئې د سرو دی او د حسن ملکه ده
ښایسته ده بې مثاله نشته خلکه لا زیبا

دا ستوري د اسمان ئې د اوربل د پاسه ځانګی
لوی کور د خوشحاله سر مې شه قربان لتا

## د میني مستي

په مینه د لیلا که مې سر لاړ شي لاړ دی شي

د هغی په ښکلا که مې سر لاړ شي لاړ دی شي

وطن ځما لیلا ده زه ئې مینه کې مجنون یم
د عشق په سارا که مې سر لاړ شی لاړ دی شی

په وینو د خپل تن به ئې ګلونه زرغونه کړم
په ګران وطن زیبا که می سر لاړ شی لاړ دی شی

د مینې په مستۍ کې ستوری دا چغه کړه پورته
په ښکلی پښتونخوا که می سر لاړ شی دی شی

## قامی نغمه

څومره چې ظلم اوتادا د ارتجاع زیاتیده
هومره می وینه په رګو کې تودیده تودیده

زړه می اور واخیست انقلاب د اسمان شومه
سیاسی نارا قامی نغمه مې سره کیده سره کیده

## د نیا نزکو واده

واده کې د نیانزکو خو ټکنکی پخیدلی
وړو ورته دیرال وهو لولۍ به ګډیدلی

د سیند د لمدو شکو نه ئې جوړ کړی نغری و
غوټیو د توتانو نه ډک کړی ئې دیکچی وی
لمدو ډکو اور و بلیده نه تش لوګی و
چای جوش ئې باندی کړی و او بی نه تودیدلی
وړو ورته دیرال وهو لولی به ګډیدلی

د خان د لور نیانزکی نومولی باچاګی و
یو بله ناوکې څو متره لیری ئې کورګی و
ناری د جنکو ئې پتا سونه ډک خمګی و
یوه یوه دانه ئې میلمنو ته ورکولی
وړو ورته دیرال وهولولی به ګډیدلی

عجبه ننداره جوړی شوی زری تیاری
د مسالو نیانزکی وی خوشحاله په چنګاری
روان لوی وریځ شو ناوکی د کور په لار
باچاګی ډیر مغرور و د خولی ګوړی دوړیدلی
وړو ورته دیرال وهولولی به ګډیدلی

جوړی چې راستنی شو کونګسی شو په دا شان
ولورکې باچاګی ورکړو د سرو لعلونو کان
ښیخی به ئې خوړه شی تګ راتګ به شی روان

ښیخان چې کله راغله خوشحالی چوپ کړی غزلی
وړو ورته دیرال وهولولی به ګډیدلی

بیا ولوست یو ماشوم د باچاګی له خوا فرمان
ډولۍ دی کاندی جوړه د سرکار مشهور ټوکیان
بیګار ته دی هم راولی اولس نه څو کسان
سوری ډولۍ ئې جوړه کړله پیاړمی وی شکیدلی
وړو ورته دیرال وهولولۍ به ګډیدلی

وړه سوری ډولۍ به وړو لاس کې ګرزوله
یوه یوه نیانزکه ئې ډولۍ کې کښینوله
نیانزکه به ډولۍ نه لاندی ښکته رالویدله
ټوکی مسخری وی تماشی خلکو کولی
وړو ورته دیرال وهولولۍ به ګډیدلی

خبرا رسیدلی په پنځم د جولای دا دی
چې ښیخ د باچاګی کوز رسیدلی په سزا دی
باچاګی عصبی ډیر زیات سرسام او وارخطا دی
درنګ ساعت ته وارد ده دی د اسمان ستوری ویلی
وړو ورته دیرال وهولولۍ به ګډیدلی

## بګوه

ولاړ په منډه ئې کې یو عجبه ځناور دی
خرندی قچر ور پوری د خره سر دی

غوړ نلري بوخۍ دي
لګۍ باندي بوندۍ دي
په سر باندي ګنچۍ دي

چلۍ دي ډېر مکري دي او باري ندي لچر دي
خر ندي قچر ور پوري د خره سر دي

د سپي غوندي غپيږي
د مچ په شان بنګيږي
خبري کړي ګړيږي

څه وائې خو تميز نکړي چې ښځه او که نر دي
خر ندي قچر ور پوري د خره سر دي

پلن چاق او سرور دي
زر مرګ دده بهتر دي
وطن ته تري خطر دي

اوازئې د بګوي ستوري لويږه پري مضر دي
خر ندي قچر ور پوري د خره سر دي

## فلسفي سوال

د ليک نه شي کړای د زور سره سيالي

زورور که چیتهیات وائی د لیک شی

محبوبا وه پدی سوال کې بنده شوی
ماتی وویل زور د کوم ځای نه راځی

ما ویل در که می جواب کړ څه به راکی
دی ویل یم یاره په مینه کې سخی

ما ویل مینی خزانی نه دی خوله راکه
سیاسی تنظیم او پانګه ګرانی زور منځ ته راوړی

پانګه بیا د زیار کښ د زیار میوه ده
تفصیل غواړی دغه سوال دی فلسفی

بیا روان شو لاس تر لاسه په چکر
لار کې ګلو راته کړه ستړی مشی

پدی منځ کې یو کوهی مخی ته راغی
په کوهی کې د ارټ ومنګوټی

ما ویل راشه د زړه سره دا وګوره
اوس به در کمه تشریح ښه اساسی

د کوهی بیخ کې او به هواری ښکاری
وائی دا چې ملکیت وم اولسی

په اول سر کې هر څه ګډ ملکیت و
خو بیا وروسته تملک راغی شخصي

دا ارټ ګوره مزدور په مټ چلیږي
د کوهي نه اوبه پورته خیژوي

چې راوخیژي اوبه د کوهي سرته
په لښتي کې بیا هواري ګرځندۍ ځي

دا لښتي ګوره مزدور د کار خولې دي
ځي پټو ته طبیعت زرغونوي

چې پټي وکړي غله نیکان ئې یو سي
مزدورانو ته یو لږ څه ورکوي

انقلاب د اسمان ستوري ژر راخیژه
چې ټولنه کې ژوندون یو شان ته شي

## قـام قـيـام

لـوګـی بـه ځـان کـړم د وطـن او د خـپـل قـام د پاره
سر به قربان کـړم د پښـتـون د نـنـګ او نـام د پـاره

پښـتـنـی مور راتـه ګـوتـې د قـربـانـی راکـړی
د پـښـتـونـخـوا دازادئ مـلـی مـرام د پـاره

## سیا سی تو منه

د میـنی شاعـری کې چې سیاسی تومنه کړه ګډه
پښتو شعـر او ادب جـګـی پـاوړی تـه وکـړه وده

## نـوی مـیـن

نـوی مـیـن یـمـه د مـیـنـی نـو بـهـار جـوړوم
د تـورو زلـفـو نـه تـارونـه د سـیـتـار جـوړوم

پښـتـونـولـی ګلان بـه سـمـه او غـرکې وکـرمـه
پښتون ځلمی یم پښـتـنـی ډول سـینـګـار جـوړوم

## د زیارکښ نوی جهان

مــه ګــرزه پــه ځــمکــه راشــه تــندر د اسمان شه
لــویــږه پــه غلــیم بــانــدی وطن خپل نه قربان شه

ځلــیــږه پــه خیبر د پښتونخوا د اسمان ســتوری شه
جګړی د ازادی کــې د زیارکښ نــوی جــهــان شــه

# دازاد پښتون اعلان

دازاد پښتون اعلان دی
استعمار او خائنان مری!
دپښتون ستوری روښان دی
د پښتونخوا دښمنان مری!

خپل چاپ: جرمنی ۱۳۵٦
لومړی گنه: ۵۰۰

بیه: دوه جرمنی مارکه